# فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَسَلاَمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى اَمَّابَعْدُ**

**فَاَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ**

**بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ**

**اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوْءُ عَمَلِهِ فَرَاٰهُ حَسَنًا** (سورة فاطر،آية:۸)

**وَقَالَ تَعَالٰى قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ** (سورة نور،آية:۳۰)

نن دسنت مطابق يوه نكاح تړل كيږى، زه كوښښ كوم چى دلمانځه ترمخه نكاح وتړل سى لاكن كه مضمون ختمول مشكل سو نو بيابه انشاء اللّٰه دجمعې دلمانځه وروسته نكاح وتړل سى او دنكاح په باره كى به هم يوڅو خبرى وسى بلكه نن زياتره دنكاح په باره كى مسئلې بيانيږى.

## تر ټولو بابركته نكاح كومه يوه ده؟

رسول اللّٰه ﷺ فرمائى

**﴿اِنَّ اَعْظَمَ النِّكَاحِ بَرَكَةً اَيْسَرُهٗ مَئُوْنَةً﴾**

(مشكوٰة المصابيح، كتاب النكاح)

تر ټولو بابركته نكاح هغه نكاح ده په كومه نكاح كى چى خرڅ كم وى او ساده وى، تر بې ځايه پيسو مصرفولو ښه دى چى هغه پيسې وخپلى لور ته وركړې، خپل زوم ته ئې وركړې، په مسجد كى سترنجى اواركه، ديو طالب خرڅ پرځان كړه غرض دخپل پير سره صلاح وكړه په يوصحيح مصرف كې ولګوه.

دوليمې دعوت كوم چى سنت دى(د واده شپه دتيرولو وروسته په خپلو قريبانو، دوستانو او مسكينانو باندى ډوډى خوړولو ته وليمه ويل كيږى)وليمه دهلك دخوا ده، دچا كورته چى ښځه راځى مګر نن سبا سرچپه معامله ده دناوى خوا هم دزوم سره

راغلی دسوو کسانو په خوړولو چښلو باندی په لکو روپۍ مصرفه وی. دچاچی پنځه لونړی دی هغه(دلونړو د واده دپاره) دشپږو لکو دبرابرولو فکرکوی اوبیا ددې سببه غلا کوی، رشوت اخلی او دزوم دپاره هم دولیمې دونه لوی دعوت ضروری نه دی چی خیمې ولګیږی لس زره کسان راسی او په لکو روپۍ په ډوډۍ مصرف سی په پنځوکسانو هم ولیمه کیدای سی. که یوخاندان څوك دعوت ته راونه بلی نو هغه دګلې حق نه لری.

## داصحابو او مشائخو په نکاح کی سادګی

کراچی خوډیر لوی ښار دی، دمدینې شریفی په کوچنی کلی کی یو صحابی حضرت عبدُالرحمٰن اِبنِ عَوفؓ رسول اللّٰهﷺ دخپلی ولیمې دعوت ته راونه بلی، رسول اللّٰهﷺ دهغه پرکالو باندی دخوشبوئی ژړ رنګ ولیدی(په هغه وخت کی به دغه رنګ په واده کی پرکالو وهل کیدی) نو دا ورته معلومه سوه او پوښتـنه ئې څنی وکړه چی آیا تا واده کړی دی مګر علیه السلام پردې خوابدی نسو چی تا زه دولیمې دعوت ته و نه غوښتم.

زموږ پیر شاه ابرارُالحق صاحب دامت برکاتهم ویو ډیر لوی او باعزته خاندان ته خپله لور ورکړه، پروفیسرحکیم عرفان اللّٰه صاحب د دیوبند دمَجلس شوریٰ ممبر او دطِبیه کالج (پاکولتې) علیګړه(هندوستان) ډیر لوی طبیب وو، زموږ پیر وهغه ته وفرمایل چی ته خپل زوی راوله او یو کوچنی بل درسره راوله یعنی د(خپل کلی) علیګړه څخه تر (زموږ کلی) هردوئی پوری تر درې کسه زیات رانسی، بس پلار دی راسی، زوی کوم چی زوم جوړیږی او یو بل کوچنی راوستای سې څلورم سړی به نه راځی. دغه ته وای سادګی.

لاکن نن سبا وائی چی په سادګی کی مو پزه پریکیږی، پزه خو دااللّٰه تعالیٰ په لاس کی ده که مو سادګی کړې وای نو به اللّٰه تعالیٰ ته موږ عزت مند وای.

# په نکاح کی د اسراف وبال

کله چی اُمّت په ودو کی په خُرافاتو او بې ځایه مصرفو کی اخته سو دهغه وخت څخه په قرض، سودی قرض او رشوت اخستل غوندی ګناوو کی مُبتلا دی او ددغه ګناوو بیخ دغه بې ځایه خرڅ او اسراف دی. چی دنکاح برکت په کم خرڅ کی دئ نو اُمّت ولی برکت نه اخلی، ولی په ډیر خرڅ کی او دنامه دپاره دبرکت څخه ځان محرومه کوی.

# په نکاح کی دګناوو رواجونه

نن سبا په ښادی کی چی کوم فلم جوړیږی هغه ته زه موئی وایم، په اولو وختو کی چی ښځو به چاته ښرا کوله نوبې ورته ویله موئی یعنی مړه سې. په فلم کی دبې حیائی انتهاءِ ده، دناوی او زوم سره دزوم نامحرمه دوستان او خپلوان هم ولاړ وی اوبیا کور په کور دغه فلم ښکاره کیږی. خپله لور، خوندی مندی، مړور ونورو ته وربنکاره کوی انتهاءِ ده دبې غیرتی، بیا وای چی صاحبه په عذاب یو، په روزی کی مو برکت نسته.

# په رزق کی دبې برکتی سبب

کله چی اللّٰہ تعالیٰ په غضب او ناراضه سی نو په روزی کی برکت دکومی خوا راځی؟ بعضی خلګ دا فکر کوی چی دوظیفې په ویلو سره به برکت حاصل کړو، ښه ئې واوری دوظیفې په ویلو سره رحمت خوبه راسی مګر که موږ ګناوی پرینږدو نو داللّٰہ تعالیٰ غضب هم راځی، کله چی رحمت او غضب مخ په مخ سی نو لاره به څنګه ورکړی، ددې مثال دغه دی چی دګناه په کولو سره به داللّٰہ تعالیٰ دغضب موټر راسی او دوظیفې په ویلو سره به درحمت موټر راسی، دواړه به یو او بل ته لاره نه ورکوی، غضب چی ایسته نسی نو رحمت هم نه راځی، دوظیفې په ویلو سره

رحمت نه حاصلیږی دګناه پر پریښولو باندی رحمت حاصلیږی، ګناه پریږده بیا بې شکه وظیفه ووایه. راته ووایاست پرکالو باندی مُرداری لګوی بیا عطر پر وهی که کالی پریولی بیا عطر پر وهی؟ دخدای ذکر عطر دی مګر اول دګناوو بدبوئی لیری که لاکن ددې دغه مطلب نه دی چی ترڅه وخته ګناه پاته نسی تاسی لمونځ او روژه هم مه کوی کوم چی فرض، واجب او سنتِ مؤکده دی. لمونځ او روژه هم وکه دالله تعالیٰ نوم هم واخله لاکن ددې عقیدې اصلاح ضروری ده چی ګناه پریښول ضروری نه ده بس وظیفه وایه ټوله کارونه به دی سم سی، هو دالله تعالیٰ نافرمانی پریښول ډیره ضروری ده، یوه ساه دخدای په نافرمانی کی دتیرولو خاوند پرخپل ځان باندی دخدای غضب حلاله وی ﴿اِلَّآ اَنْ يَّتُوْبَ﴾ هو که ئې توبه وکښل هغه جلا خبره ده.

## عزت دکوم شی څخه حاصلیږی؟

یوه سړی ماته نن وویل چی زه دشلو(۲۰)کالو ځوان یم لاکن دکوم وخت څخه چی ما ږیره پرې ایښې ده نو سپنسری ښځی هم ماته اکا وایی پر ما مسخرې کوی چی د اکا په ویلو سره وبیریږم او ږیره وخریم، ما هغه ځوان ته وویل چی ظالمه که سپنسری ښځی تاته اکا وایی نوپه دغه کی ستا عزت دی که ذلت؟ ته خو باید پر دغه عزت باندی شکر وکاږې همدغه رنګه که نن یو اوولس(۱۷) اتلس(۱۸)کلنه انجلی چادری وکړی نو دهغې خاندان هغې ته څه وایی؟ (په پسخند) موری لږ لار راکه. دلته هغه انجلی وبیریږی چی په چادری سره خو زه مور سوم، اې ظالمی! تاته الله تعالیٰ عزت درکوی چی لوی لوی خلګ تاته مور وایی شکر وکاږه چی الله تعالیٰ عزت درکی ته دغه غواړې چی خلګ تاته کوچنی انجلی ووایی؟

زما یودوست دعَلّامه شِبلی وراره عمر یې شپیته(۶۰) کاله وو ماشاء الله ډیره ښائسته ږیره ئې وه، هغه یو بس ته وروختی نو کوم هلکوان چی پرچوکی ناست وه هغه ولاړسوه او ورته وې ویل (داحترام په خاطر) چی اکا ته زموږ پر چوکی کښېنه.

یو سړی دده څخه لس(۱۰)کاله مشر داوویا(۷۰)کالو پتلون ئې کړی، نِك ټائی تړلې، ږیره خریلې په یو ښه دفترکی ئې کار کاوه هغه زما ددوست څخه پوښتنه وکړه چی ستا عمر څونه دی؟ ده ورته وویل شپیته(٦۰)کاله، نوهغه وهلکوانو ته وویل چی زه ترده لس کاله مشر یم تاسی ماته ولی ځای نه راکوی، ماته اکا ولی نه وایاست؟ نو هلکوانو ورته وویل چی ته خو(دږیری دخریلو په سبب) ورارہ معلومیږې اکا کله معلومیږې، اکا خوبه هغه وخت معلومیږې چی ته دونه لو ږیره پریږدې.

## پر عقل باندی دعذاب علامه

دا یوبل غضب دی بس څه درته ووایم پر غضب باندی غضب دی چی دنیك خاندان انجلی دلمانځه او روژې خاونده، پرده داره دپیسو په خاطر مور او پلار دا یو (مسلمان) امریکائی تعلیم یافته بې دینه سړی ته ورکړی، کله چی هغه په چادری کی دخپل خاوند کورته ولاړه نو خاوند یې چادری ته اور ورواچوی او ورته وې ویل چی ته به لبِ شیرین، میك اَپ او په لڅو کالوکی زما سره به کِلفټَن(داُوبو غاړی) ته ځې، بازارو ته به ځې، زما ددوستانو او خپلوانو سره به وینې، دغه دزړې زمانې چادری که دی وکړه نو زما عزت به په خاورو سی، خلګ به وائی چی دا څنګه دزړې زمانې پرده داره ښځه ئې راوستله. آه ! کوم شی ته چی اللّٰه او رسول عزت ورکړی وی نن مسلمان هغه ذلت بولی.

وواياست دښځی عزت په کوم شی کی دی، په پرده کی دی که په لڅ ګرځیدلو کی دی؟ آیا یوه شریفه او حیاداره ښځه دغه غواړی چی نامحرمه خلګ دی ددې ووریښتانو او باړخوګانو ته په بدنظر وګوری او شپیلَکان پسی وهی، دښځی احترام دغه وو چی هغې لمونځ او روژه کولای، دخاوند خدمت ئې کولای، د اولادو پرورش ئې کولای او په پرده کی دباندی وتلای لاکن نن خاوند فیشنی مائینه دځانه سره په بازاروکی ګرځول خپل عزت بولی، که ئې ښځه چادری والا یی نوهغه شرمیږی.

داځنګه عزت دی چی ستا ښځی ته نور خلګ ګوری. دبې شرمی او بې غیرتی یوحد وی. کله چی انسان دالله تعالی نافرمانی کوی نو دهغه پر عقل هم عذاب نازل سی او هغه ته ښه خبره هم بده معلومیږی. دغه(خبره) الله تعالی داسی فرمائی

﴿اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوْءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ حَسَنًا﴾ (سورة الفاطر،آية۸)

یعنی شیطان بد ښه ورته ښکاره کوی بیا غلطی خبری خلګ ښه بولی څرنګه چی ښځی بې پردګی ښه بولی مګر کوم چی نیکی ښځی دی هغه په پرده کی اوسیږی، چادری استعمالوی هغه دخدای دوستانی دی، روژه داره او لمونځ ګزاره دی دهغو احترام پر موږ لازم دی، موږ دهغو څخه دعا اخلو لاکن کومی چی بې پرده ګرځی، په خپلو وریښتانو او بارخوګانو باندی دخلګو ایمانونه ضایع کوی موږ به دداسی ښځو احترام هیڅکله ونه کړو. زما داکثره بیانو موضوع دغه وی چی دبې پردې ښځی وریښتان او بارخوګان زموږ دځوانانو ایمانونه ورضایع نه کړی.

## دعشقِ مجازی څخه دځان ساتلو مراقبه

زما یو دوست (ویو بل وطن) هانګ کانګ ته ولاړی، په هانګ کانګ کی ډیره بې پردګی ده، هلته ښځی پرسړك باندی خلګ رابولی چی دلته راسه موږ به دی چاپی کړو، وبه دی لمبوو، هغه ماته وویل که ما(ستا) دخانقاه اِمدادیه اشرفیه ګلشن اقبال بلاك نمبر دوهم بیانونه نه وای اوریدلی او دالله تعالی دغضب او قهر او په قبرکی دحُسن بربادی او خپل قبرته تلل می مخ ته نه وای نو به زه په زنا کی مُبتلا سوی وای.

حضرت تهانوی رحمة الله علیه فرمائی چی دعشقِ مجازی مرض درې قسمه وی، بعضی خلګ دښائستو هلکوانو سره عشق لری دښځو وخواته دهغو هیڅ میلان(شوق) نه وی او دبعضو میلان دښائستو ښځو وخواته وی دهلکوانو څخه دهغو خوا ګرځی او بعضی ددواړو وخواته میلان لری یعنی که هلك په لاس ورغلی دهغه سره مخ تورکړی او که ښځه په لاس ورغله نو دهغې سره مخ تورکړی.

اُوس وواياست دا دحُسن بې عزتي ده كنه؟ زه يوازې ښځوته نه وايم دښائستو هلكوانو نوم هم اخلم كله چې زه وايم كه ستا دښائسته هلك سره عشق سته نو په قبر كې ئې وګوره چې دهغه دوريښتانو او باړخوګانو څه حال دې او دګناوو اعضاء يې څرنګه خاورې سوې دې، ټوله شيان ئې خاورې سوه، تاچې دكومو باړخوګانو مَچه اخستل او پر كومو ستركو چې ته عاشق وې په قبركې خو ئې وګوره چې هغه خاورې څه سوې. زما شعر دى

*کسی خاکی پہ مت کر خاک اپنی زندگانی کو*
*جوانی کر فدا اس پر کہ جس نے دی جوانی کو*

ترجمہ: ديو خاورو پر بدن باندې خپل ژوند مه خاورې كوه ځوانى پر هغه چا قربان كه چاچې ځوانى دركړې ده.

## دعشقِ مجازی بربادی

بعضى خلګ وايي چې ستا په خانقاه كې دعشقِ مجازي او بدنظرى موضوع ډيره وى، زه هغوته دغه جواب وركوم كه په يوكلي كې دهيضې مرض راغلى وى نوهلته د زُكام او ريزش فكر به كيږى او كه دهيضې؟ بدنظرى، دحُسن لځ والى، فلم، سينما، فلمى غزلو نن زموږ ځوانان څرنګه رابرباد كړل، په كور كې ناست خلګو تاسى ته څه معلوم دى چې څه پيښنه ده، ترڅو چې دحُسن بربادى او دقبر حالات بيان نسى زموږ دځوانانو ايمانونه به ددغه ښځو څخه كوم چې لڅى ګرځى ضايع كيږى.

يو ډير شريف سيد ځوان ما وليدى چې دهغه مخ زړ سوی وو، دمخ هډوكى ئې راختلى وه او ستركى ئې ننوتلى وې، ما پوښتنه ورڅخه وكړه چې په تا څه كيږى، دتې بى مريض خو نه يې؟ راته وې ويل چې يا يو هلك ماته د زنا لځ فلم راښكاره كړى اُوس شپږ مياشتى كيږى ما لمونځ نه دى كړى هر وخت ناپاك يم، زما فكر هر وخت په هغه فلم كې دى، په سجده كې هم هغه خيال وى، چې لمونځ كوم په سجده كې هغه

لځ فلم می مخ ته یی. آه ! د اُمّت پر بربادی باندی که نن دغه موضوع زه ډیره بیانوم نو بعضی نادانه او کم عقلو ته دا سوال ورپیدا دی چی صاحبه دغه مرض دلته ولی ډیر بیانیږی. زه طبیب هم یم ماته داسی برباد ځوانان راغله چی راته وې ویل موږ به زهر وخورو، په زنا او بدکاری سره مو دونه مخ تور کړی چی اُوس په موږ کی طاقت نسته او واده مو رانژدې دی، زموږ علاج راوکه. دوی دغه زهر ولی وخوړله؟ پر دغه باندی زما شعر دی

حسینوں سے جسے پالا پڑا ہے
اسے بس سنکھیا کھانا پڑا ہے

ترجمہ: چاچی دښائستو سره دوستی کړې ده نوآخرکار دزهرو په خوړولو سره اخته سو.

ددې شعر دوې معنٰی وی دی که جُدائی ورسره راغله او هغه معشوق ئې نه کړی حاصل نو دهغه په غم کی ئې زهر وخوړل اوکه هغه معشوق ئې حاصل کړی نو دونه منی ئې پرضایع کړه چی نامرده سو اُوس ئې دسِنکھیا کشته وخوړل په دواړو حال کی یعنی چی حاصل سو هم او چی جُدا سو هم ئې سِنکھیا(زهر) وخوړل.

دعشقِ مجازی دبربادی دونه قصې زما په سینه کی دی که دحُسن او عشق دبربادی او دصحت دخرابوالی او دایمان پر بربادی باندی که کتاب ولیکم نو پنځه زره ورقی کتاب به ولیکل سی بیاهم مایو مختصر کتاب لیکلی دی دهغه نوم "دروح ناجوړیانی او دهغو علاج" دی، زموږ په کتاب خانه کی سته دغه وواياست.

## دښځی عزت په کوم شی کی دی؟

که دیو سړی زما دغه مضمون نه وی خوښ هغه دی زما خانقاه پریږدی، ماته دی نه هغه سړی راځی او نه دی هغه ښځه راځی(ښځی په پرده کی بیان اوری) دچا چی زما بیان نه وی خوښ او هغه وای چی کله ته دحُسن بربادی او دښځی بې عزتی بیانوې نو زه ډیر په تکلیفیږم، تاسی وواياست دحُسن بربادی او خُرافات په دې خاطر

بیانول چی دځوانانو ایمان محفوظه سی او په فلم کی چی کومی ښځی لځی ښکاره کیږی دهغو دفتنې څخه زموږ دځوانانو ژوند محفوظه سی. دا دښځی بې عزتی ده که دهغې عزت اواحترام دی چی دهغې دحُسن فنائیت په ښکاره کولو سره دحَوَس ناکو، بدکارو او فاسقانو خلګو څخه دا وساتل سی، دا بله خبره ده چی یوښځه داسی بده یی چی دې ته خطر وی چی دداسی خبرو په اوریدو سره زما دعاشق په نظر کی زما دحُسن قیمت کم نسی نو دداسی نالائقو ښځو خبره زه نه کوم.

زه وداسوکسانوته ضرورت نه لرم چی زما په خبرو سره په تکلیفـیږی، زه اعلان کوم که چاته زما په خبرو سره فائده نه رسیږی نو پوه دی سی چی دهغه زړه زما سره نه لګیږی. لهٰذا زما دخبرو داصلاح کوښښ دی نه هغه سړی کوی او نه هغه ښځه، کوم مریض چی دډاکټر اصلاح کوی پر ډاکټر باندی فرض ده چی هغه دهسپتال څخه وباسی، تاسی ووایاست چی دمُرغانو خرڅلاوو والا یا سبزی فروش ویوه ډاکټرته دغه صلاح ورکولای سی چی ستا ګولی دوه نیم زره ملی ګرامه ولی ده ددې څخه په کم باندی هم کارکیږی. همدغه رنګه یو روحانی مریض(په ګناووکی اخته سړی) هم دغه حق نه لری چی وخپل روحانی طبیب(پیر) ته دغه صلاح ورکړی چی صاحبه دلته دغه مضمون ولی ډیر بیانیږی. زه دشلوکالو څخه دغه بیانوم او خلګ زما دونه مهربانی وایی چی آه ! ستا دبیان د اوریدو ترمخه موږ ډیرخطرناکه او ډیر بد ژوند تیروی ددغه بیانو په برکت سره اللّٰه تعالٰی موږ ته دعشقِ مجازی او دښځو څخه نجات راپه نصیب کړی.

هغه نیکی بیـبیانی کوم چی پرده کوی، دخدای دوستانی دی، ددې بیانو څخه هغه زموږ مقصد نه وی، موږ خو دهغو څخه دعاوی اخلو، دداسی ښځو چی کله تلیفون راسی نو زه هغوته وایم چی زما دصحت دپاره دعا کوی، که یوه ښځه راته ووایی چی عمرې ته ځم زما دپاره دعا وکه نو زه هم هغې ته ددعا دا ووایم، داسی

ښځې موږ دخدای دوستانی بولو، زه خو خپله دهغو صفت کوم لاکن دچاچی بد بیانوم دهغه ځخه معنٰی هغه خبیثی ښځې دی چی په بازارو کی بې پرده لڅی ګرځی، لږخو دی عقل استعمال کړی، انسان باید دو نه بې عقل او لیونی نه وی، زما په مطلب دی پوه سی، زه دښځو بې عزتی نه کوم، زه دهغه ښځو ډیر احترام کوم چی دخدای دوستانی وی، دهغو ښځو ددعاوو زه محتاجه یم، زه دهغوی ځخه خواست هم کوم چی ماهم په دعاوو کی یاد ساتی، کله چی زه دحُسن خرابی بیانوم نو دهغه ځخه معنٰی هغه ښځې دی چی پر سر کانو باندی لڅی ګرځی، دهلکوانو سره یوځای سبق وایی، وهلکوانو ته اشارې کوی او زموږ دځوانانو ایمانونه ورضایع کوی، زه دداسی حُسن احترام وکم؟ دداسی حُسن پر احترم باندی زه لعنت وایم چی زموږ دځوانانو ایمان راضایع کوی.

## دائیرهوستېسو(هغه ښځې چی په طیاره کی کارکوی)دذلت وظیفه

زه په طیاره کی دشپې او ورځی تګ راتګ لرم ما په خپلو سترګو ولیدل چی دښې کورنی انجونی دی لاکن هلته ئې پوړنی غورځولی ډوډی ځغله وی او هوائی مزدورانی دی او دپیلوټ او په طیاره کی دکارکونکو ځوانانو او نابلده خلګو سره پر چوکی باندی پښه دپښې سره مُوښتې ناستی یی او خبری شروع دی، تردې حده چی یواری زموږ پیر او زه په طیاره کی ناست وو، دعمرې که دحج سفر وو، یوې ائیرهوستېسی خپل زنګنونه زما دزنګنو سره مُوښتی نژدې پرچوکی کښینسته، نو موږ دستی دطیارې وکارکونکوته حال ورکړی اوکوم چی دطیارې کارکونکی او زموږ دوستان وه هغوته مو وویل چی دغه انجلی ته ووایه چی بل ځای کښینی. دا ستا دخوندو مندو حال دی نو اُوس ووایه چی دهغو دحُسن هلته په طیاره کی بې عزتی

شروع ده او که زما په بیان کی ئې بې عزتی کیږی.

تا ددې خبری غم خو ونه کړی چی خوندی مَندی دباندی بې پرده ګرځی او خلګ هغو ته په بدنظر ګوری، هلته بې عزتی په نظرنه درځی، خدای دی دهغی ښځی دعقل څخه عذاب لیری کی چاچی ماته تلیفون راوکی. ددې بې پردګی او عشقِ مجازی څخه داسی داسی خطرناکه حالات پیدا سوی دی چی په اوریدو سره یې دبدن وریښتان شخ ودریږی، داسی دوې قصې درته وړاندی کوم.

## دبدنظری عبرتناکه انجام

حضرت مولانا تهانوی رحمة اللّٰه علیه په خپل بیان کی وائی چی دهندوستان دتقسیم ترمخه یوه سړی خپله آرایش کړې ښځه په ښه کالو کی دشمله شنه غروته دهوا خوری دپاره بوتله، څنګه چی په پاکستان کی دمَـرِی شنه غرونه دی همدغه سی په هندوستان کی شمله ده، په هغه وخت کی هلته د انګریزانو کورونه وه، دګرمی شپې وې، دیو انګریز پرکور باندی توفکان نیولی دوه انګریز عسکر چوکیداران ولاړ وه، دغه سړی پتلون کړی، نِك ټائی تړلې، خپله بې پرده ځوانه ښځه ښه جوړه کړې، دهغې فیشن ئې ښکاره کاوه چی دغه نوې زمانه ده، موږ تعلیم یافته او پرمخ تللی خلګ یو، نَـعُوذُ بِاللّٰه اُوس درسول اللّٰهﷺ زړه زمانه نه ده، اُوس ددې پرمخ تللی زمانې دبې پردګی عذاب واوری کوم چی حَکیمُ الامت حضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه په خپل نصیحت کی بیان کړی او کوم چی نن ئې زه په مسجد کی بیانوم، دغه دواړه چوکیداران دلندن څخه یوکال کیدی چی راغلی وه، دشهوت اور یې بل وو، بې پرده ښځه ئې ولیده نو ووایاست چی څه حال به ئې سوی وی؟

اې ظلمانو! په دغه درته وایم چی پرځان باندی رحم وکی، اُوس هم زما دبیان قدر وکړی او که بیاهم تاته فائده نه رسیږی نو خانقاه ته راتګ پریږده، ښځه بې پرده ګرځوې لاکن یو پاؤ غوښی په کڅونه(خَلته) کی پُټی وړې چی دهَوا مُرغه یې

یونسی، یو پاؤ شیدې دپیشی څخه پُټوې چی پیشی یې ونه چښی او زر روپیۍ دی په جیب کی دی نو پر جیب باندی لاس ایږدې چی غل ئې راڅخه غلا نه کړی، په دغه شیانو کی خپله دتلو طاقت نسته، په پیسو کی دونه طاقت نسته چی وغله ته خپله ولاړی سی، په شیدو کی دونه طاقت نسته چی پیشی ته ولاړی سی، په غوښو کی دونه طاقت نسته چی خپله ومُرغه ته په هَوا سی مګر په ښځه کی دغه خاصیت سته چی خپله یوځای ولاړه سی. په اخبارو کی وایو چی ښځه عاشقه سول او دکور څخه ولاړه، نو دیو پاؤ شیدو قدر کونکو! دیو پاؤ غوښو حفاظت کونکو! په جیب کی پر زرو روپو باندی لاس ایښونکو! خپله خور او مور یوازی استوی تاسی شرم او غیرت نه لری.

زه په ناظم آباد کی شل کاله اوسیدلی یم، هلته زما یودوست چی دیوکالج (پاکولتې) مُدیر وو یوه قصه ئې راته وکړه چی ماته یو سړی راغلی هغه راته وویل چی زما لور درې شپې کیږی چی کورته نه ده راغلې ته وګوره چی په کتاب کی ئې حاضری سته که یا؟ ما ورته وویل چی ستا لور خو هره ورځ په ټولو سبقانو کی حاضره وی اُوس ددې ځای څخه که ستا کور ته درنسی نو په موږ اړه نه لری، نو پلار ئې وای چی ok ok اَوکې اَوکې(یعنی پروا نه لری) هغې ته دی څوك څه نه وایی زموږ دطرفه څخه اَوکې یعنی بس دکالج غیر حاضری دی نه وی نور هر چیری چی اوسیږی، دهر هلك سره چی اوسیږی موږ پرهغه باندی هیڅ اعتراض نه لرو، دکالج مُدیر دغه راته وویل نوپه ژړا سو ځکه چی صوفی لمونځ ګزاره دخدای دوست وو.

لهٰذا که زه دعشقِ مجازی مرض بیانوم نوکوم سړۍ چی زما خبری نه خوښوی، پرځای دفائدې هغه دغه اعتراض کوی چی دلته هر واری داغه بیان کیږی نو دچاچی دغه مضمون نه وی خوښ هغه دی ومفتی رشید احمد صاحب ته، مولانا سَبحَان محمود صاحب ته، مولانا تَقِی عُثمانی صاحب ته یا مولانا مُفتی ولی حسن صاحب الغرض دډیرو بزرګانو بیانونه کیږی هلته دی ولاړسی، ما دی پریږدی، دلته داسی سړی ته

فائده هم نه رسیږی، زه خو دهیضې ومریض ته دهیضې ستن(پیچکاری) ورلګوم. لهٰذا دکوم سړی چی زما سره زړه نه لګیږی هغه دی زما مَجلس ته نه رائحی.

حکیمُ الامت تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمائی چی دبزرګانو څخه عمری دوه قسمه خلګوته ګټه رسیږی، یا به (سړی) دهغه بزرګ سره بې انتهاء محبت لری چی دهغه هره خبره ده ته ښه معلومیږی یا به ډیر دعقل خاوند وی چی دهغه په هره خبره ئې سرخلاص سی چی په دغه خبره کی ئې دغه حکمت دی، که سړی بې عقل وی یا عاشق نه وی کوم څوك چی نیك ګمان نه لری نو داسی خلګو ته دبزرګانو څخه فائده نسی رسیدای. زه بیا اعلان کوم چی زما د اصلاح فکر پریږده، مریض حق نه لری چی دډاکټر اصلاح وکړی، که تاته زما خبره ښه او دګټې معلومیږی نو راسه پر سَر او سترګو راسه، موږ ستا دپاره لاس په دعا یو، دعرفات په میدان کی، په منٰی کی، په مزدلفه کی، دروضې مبارکی ومخته، په بیت اللّٰه کی چی اې خدایه څوك چی خانقاه ته راسی هغه محرومه ولاړ نسی، هغه دنسبت خاوند(دخدای دوست) که.

زما ددعا او زما دفریادو قدر وکړی، ډیره کم عقله ده هغه ښځه چاچی ماته دغه تلیفون راوکی چی صاحبه دحُسنِ مجازی انجام په بیانولو سره دښځی بې عزتی کیږی، که دغه ښځه نن نه وی راغلې نوکومی ښځی چی راغلی دی ودغه ښځی ته دی زما دغه خبره ور ورسوی چی هغه دی بیا هیڅکله دلته نه رائحی، زه داغه مضمون عمری بیانوم دکوم چی نن سبا هیضه راغلې ده، دکوم څخه چی دأُمّت ځوانان بربادیږی.

کشکی هغه جوړې ته کوم چی شمله ته تللې وه یو مُلا، یو دخدای دوست دغه ورښولی وای چی زویه خپله ښځه بې پرده دباندی مه بیایه داسی نه وی چی ستا دښځی عزت برباد سی، هغه دواړو عسکرو دتوفك په زور دهغه سړی بې پرده ښځه کش کړل او د میړه ومخته ئې مخ ورسره تورکړی، وګوری دحضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه

په بيان کی دغه قصه ده. نور ځان فيشنی وبولی، نور خپل خوندی مندی په بازارو کی
بې پرده او لڅی ګرځوی او دغه عذاب وګوری يعنی خاوند نِك ټائی کړې ولاړدی او
خپله ښځه وينی چی څه ورسره کيږی او دڅه کولو طاقت نه لری ځکه چی هغه توفك
والا وه، که دغه ښځه په پرده کی وای نو دغه به نوای ورسره سوی، تر ننه پوری ديو
پرده داری ښځی سره زنا نه ده سوې، که سوې ده نو اول هغه بې پرده سوې ده بيا
پکښی اخته سوې ده، که په پرده کی وای نوبه په حفاظت کی وای.

په دغه خاطر اللّٰه تعالیٰ وخپلو بندګانوته حُکم ورکړی دی چی خبردار خپلی
سترګی دچا پر ښځی، دچا پر لُور، دچا پر خاله، دچا پر خور، دچا پر مور باندی مه
اچوه ، دغه دښځی احترام دی، دغه ئې احترام نه دی چی زه دغه مضمون بيانول پريږدم
او ته بې حيا ګرځه، که ته خپل اصلاح غواړې نوبه دغه اورې، ووايااست دښځو احترام
په تقویٰ کی دی اوکه داللّٰه تعالیٰ په نافرمانی کی دی چی دښځی حُسن بايد دونه
ښکاره سی چی خلګ دهغې په عشق کی اخته سی.

کومی ښځی چی په پرده کی اوسيږی، لمونځ ګزاره او روژه داره دی هغوته
موږ خپله ددعا دپاره وايو، اَلحمدُلِلّٰه دلته په بيان کی(ښځی په پرده کی بيان اوری)
ډيری داسی دخدای دوستانی ښځی راځی دچاچی ددعاوو موږ شوق لرو او هغه ددې
خبری شهادت هم ورکولای سی چی کله دهغو تليفون راغلی دۍ نوما ورته ويلی دی
چی ما هم په دُعاوو کی ياد ساتی، که زما په زړه کی ددې خوندو مندو احترام نه وای
نوما ددوی څخه ددُعاوو خواست ولی کوی لاکن زه غواړم چی څوك ستا لُور بې
عزته نه کړی، ته هغه په پرده کی وساته، چادری په وکه.

دا دبې پردګی عذاب دی چی خلګ ښځی غلا کی دهغو سره مخ تورکړی
بيائې مړې کی، په دغه خاطر دشريعت حُکم دۍ که دکوره څخه وزې نوپه پرده کی
وزه، ښادی او ودو ته په ساده کالوکی ځه، ستا پر حُسن باندی دچا نظر ونه مُبتلی،

ستا حُسن او ښائست دی ستا دمیړه دپاره مبارك وی.

زه وخپلو دوستانو ته داغه وایم که پر یو ښائسته هلك باندی نظر ومُبتلی نو دستی دغه ووایه چی اې اللّٰه دده حُسن دده دښځی دپاره مبارك که، ولی که یو ښځه دخپل ځوان ښائسته میړه مَچه واخلی نو دا جائزه ده که یا؟ اوکه پر یوې ښائستې انجلی باندی بیله ارادې یودم نظر ومُبتلی نو دغه دعا وکه چی اې خدایه ددې حُسن ددې دمیړه دپاره مبارك کړې.

## په بدنظری سره کورنی ژوند برباد سی

ډیری بې چارې ښځی په ژړا راځی تعویذ غواړی چی زما میړه دفلمو په خاطر دنورو ښځو وخواته متوجه دی، ما بَنگیہ بُولی. آه ! په کور کور کی دشهوت پرستی اور بل دی او ماته دغه تعلیم راکولکیږی چی ته دغه مضمون مه بیانوه، ووایاست ! زه ددوو شپو څخه ددې ښځی دبې عقلی څخه دونه په غم کی یم، په دونه تکلیف کی یم چی حَد نه لری.

اکثره ښځی په تلیفون کی ژاړی چی په بازارو کی دحُسن دعُریانی او بې پردګی په خاطر زه دخپل میړه دمحبت څخه محرومه یم، نورو ښځوته چی سرې وګوری نو وخپلی ښځی ته وایی چی ستا حُسن کم دی، زما خو قسمت خراب دی، زما مور ته سمه نه وې لیدلې. دغه خبری په دې خاطر وی چی شیطان دسړك ښځی وانسان ته ډیری ښه معلوموی، جادو پر وکی په دې خاطر دبازارو ښځی ډیری ښائستې معلومیږی، دا دشیطان مَکر(خطا ایستل) دی، اللّٰه تعالٰی چی کومه یوه درکړې ده پر هغه باندی راضی اوسه.

په حدیث شریف کی دی چی دغه مسلمانانی بی بی ګانی به په جنت کی تر حُورو ډیری ښائستې کړل سی. دبل چا شی دبل چا وبوله، دبل چا شی ته په کتلو سره خپل زړه ناقراره کول تردې بې عقل انسان به څوك وی؟

دنن ځخه پنځلس کاله ترمخه یو سړی په هسپتال کی داخل سو او دیو بې پرده کم عمره نَرسِی(په شفاخانه کی کارکونکې ښځه) سره ئې زړه ولګیدی، دده ښځه او خاندان ماته په ژړا راغله چی موږ به مړه سو، ددغه سړی دپاره تعویذ او دعا وکه، ماهم واللّٰه تعالیٰ ته ډیر وژړل بیا هغه سړی ددغه ځخه خلاص سو او په خاندان کی چی ئې دکوم غم اور لګیدلی وو هغه ددې غم ځخه خلاص سول.

زه په دغه وایم چی دغه وخت ددغه مضمون دبیانولو ډیر ضرورت دی، ډیری داسی انجونی چی تر اُوسه ئې ودونه نه دی سوی زما سره د اصلاح دپاره تعلق لری(یعنی مُریدانی می دی) هغو ماته په اصلاحی خطو کی ولیکل چی ستا په بیانو سره موږ.ته ډیره فائده ورسیدل او موږ دبدنظری ځخه وساتل سوو او په اخبارو کی هم دخلکو وعکسوته نه ګورو. ووایاست! آیا ځوانانو انجونو ته فائده حاصلیږی که یا؟ الحمدُلِلّٰه دونه فائده ورته حاصله سوې ده چی ماته دښځو اصلاحی خطونه راځی، تلیفونونه راځی وایی چی موږ تاته او ستا دژوند دپاره دُعاوی کوو ځکه چی ستا ومَجلس ته په راتګ سره زموږ ډیری ګناوی پاته سوې.

## مریض پر طبیب باندی د اعتراض حق نه لری

لاکن داسی لیونی ښځی ته زه څه ووایم چی زما زړه ئې را زخمی کی، دداسی بې عقلی ځخه دی خدای تعالیٰ تښوله وساتی، دخدای تعالیٰ ځخه دُعا کوم چی خدای دی ودې ښځی ته هدایت ورکړی، ددې زما دمضمون سره زړه نه لګیږی، که زما دخبرو ځخه فائده نه ور رسیږی نو دعا وکی چی دا بیا هیڅکله دلته رانسی ځکه چی ددې دلته راتګ بیکاره دی، چی فائده نه وی نو خپل ژوند ولی ضایع کوې، ونورو عُلماوو ته ورسه لاکن دډاکټر د اصلاح حوصله مه کوه، دې ښځی په تلیفون کی زما د اصلاح کوښښ وکی حالانکه مریض څه حق لری چی ډاکټر ته صلاح ورکړی، که زما دعلاج ځخه تاته فائده نه رسیږی نو وبل ډاکټر ته ورسه، په بل هسپتال کی داخله

واخله، دغه خو دروحانی ناجوړیو(یعنی دګناوو دپریښولو) هسپتال دی، زما دغه بیانونه عامی خبری مه بوله.

نن هرځای بیانونه کیږی نو آیا ددې دغه مطلب دی چی دچا زړه وغواړی هغه دی بیانونکی تر غوږ ونیسی؟ دغه روحانی هسپتال دی، دلته هیڅ مریض ته دغه اجازه نسته چی هغه ماته صلاح راکړی، که یوچاته فائده رسیږی نو دلته دی اوسی که فائده نه وی ورته نو وبل ځای ته دی ولاړسی.

دخواجه صاحب شعرونه دی

جائے جسے مجذوب نہ زاہد نظر آئے
بھائے نہ جسے رند وہ پھر کیوں اِدھر آئے
فرزانہ جسے بننا ہو جائے وہ کہیں اور
دیوانہ جسے بننا ہو بس وہ ادھر آئے
سو بار بگڑنا جسے منظور ہو اپنا
وہ آئے یہاں اور بچشم و بسر آئے

ترجمہ: هغه سړی چی نه مجذوب وینی نه زاهد وینی، دچاچی دګناهګاره سره نه لګیږی هغه ولی دلته راځی، خوك چی ځان څه بولی هغه دی ولاړسی بل ځای، که خوك ځان(دخدای په محبت کی) لیونی کول غواړی هغه دی دلته راسی، که څوك (دخدای په لارکی) سل واره ځان ذلیله کول غواړی هغه دی راسی پر سروسترګو دی راسی.

زه ستا محتاجه نه یم، زما عزت دالله تعالی په لاس کی دی، دشمسُ الدین تبریزی رحمة الله علیه بس یوخلیفه مولانا جلالُ الدین رومی وو لاکن په ټوله دنیا کی ئې نوم وځلیدی، دشلو کالو څخه زه پرخپلو بیانو باندی دخلګو څخه مهربانی او دُعاوی اورم، په شلو کالو کی ماته اول وار داسی تلیفون راغلی چی ته په خپلو بیانو

کی چی دحُسن کوم انجام بیانوې او دحُسن چی کوم فناتوب ته بیانوې په هغه خو دښځی بې عزتی کیږی.

## دحُسن فناتوب بیانول دچا بې عزتی نه ده

آیا دغه دښځی عزت دی چی هغه پر سړکانو باندی لڅه ګرځی؟ زما مقصد دبې پرده ښځو دحُسن فناتوب بیانول دی چی خلګ دهغو په قصه کی برباد نسی. زه دحسنِ مجازی په فناتوب کی لغړزنی هلکوان هم بیانوم، ډیر خلګ دلغړزنو هلکوانو په عشق باندی مُبتلا وی، دهغو بارخوګان او تور وریښتان هم په دغه کی شامل دی، دسپنږرتوب وروسته په دې هلکوانو کی به څه پاته سی، پر دې باندی زما شعر دی

کمر جھک کے مثلِ کمانی ہوئی
کوئی نانا ہوا کوئی نانی ہوئی

ترجمہ: ملا یې کړوپه په مثال دکمانی سول څوك انا سوله څوك نیکه.

آیا په دغه شعر کی دچا بې عزتی کیږی؟ زه وهغی ښځی ته چاچی ماته تلیفون راوکی وایم چی په قونیه(تُرکی) کی دمولانا رومی پر قبر دی هم دغه خبره وکی کومه خبره چی ئې ماته په تلیفون کی وکړه چی دحُسنِ فانی د انجام په بیانولو سره ښځه بې عزته کیږی، اُوس پر حسنِ فانی باندی دمولانا رومی شعر هم واوری

زلفِ جعد و مشکبار و عقل بر
آخر او دم زشت پیر خر

اې انسانانو، اې ایمان والو، دچا چی وریښتان تور دی، پیچیلی دی، مُشك بار دی یعنی دمُشکو بوئی ئې ځی، عقل بَـر دی یعنی دخلکو عقل وړی، پر هغو باندی ایمان مه ضایع کوی، پر هغه ځان مه قربانوی، کله چی دغه دتورو کوڅیو ښځی سپنسری سی نو دهغو چُوتی ګان به د زاړه خره دلکۍ په مثل معلومیږی، دغه دچا کَلام دی؟ زه دمولانا جلالُ الدین رومی رحمة اللّٰه علیه دفارسی شعر ترجمه درته بیانوم چی خبردار

دیو چا پر تورو کوځیو باندی مه خطاوزه، په پیری کی به دهغو دغه ځُوتی د زاړه خره دلَکۍ په مثل معلومیږی.

آخر او دم زشت پیر خر

دلته دپیر معنٰی سپنږیری دی، پرچا باندی ایمان ورکوې، پرچا باندی ځان قربانوې، اُوس پر دې باندی هم ووایه چی زه دمولانا رومی کتاب هم نه وایم ځکه چی په دې کی دښځی بې عزتی راته معلومیږی، خپل احترام دی واخله بل ځای ته ولاړه سه، زه داسی اوریدونکی ښځی او نَـر نه غواړم چی دونه عقل هم نه لری، داسی بې عقلان زما څخه ګټه نسی اخستای، هغه ناقی په ناقی خپل ژوند ضایع کوی، زه ودغه ښځی ته وایم چی خبردار دادی دلته نه راځی، ووایاست آیا دمولانا رومی رحمة اللّٰه علیه ددغه شعر څخه ځوانان عقل اخلی که یا؟ آیا دداسی شعر څخه د اُمّت د ایمان حفاظت کیږی که یا؟

## پرهیزګاره میړه دخپلی ښځی سره ډیر محبت کوی

اُوس به زه یوه بله خبره درته وکم که ستاسی مړونه هم دغه شعر واوری نوخپله ښځه به هغه کمتره نه بولی، دهغه نظر به دنورو ښځو څخه وساتل سی، په یاد ئې وساتی په دې شعرو سره، زما په بیانو سره او دخدای په فضل اوکرم سره دچا خاوند چی څونه لوی دخدای دوست جوړسی (هغونه به) دهغه ددې بې پرده ښځو دوریښتانو او باړخوګانو څخه بد کیږی او ستا خاوند به ستا عزت کوی، دغه مَسئله درته بیانوم چی خاوند څونه پرهیزګاره وی هغونه به دهغه دخپلی ښځی سره محبت ډیر وی ځکه چی کله دهغه په زړه کی دنورو ښځو دباړخوګانو او تورو وریښتانو څخه نفرت وی نو ستا قدر به نور هم ورسره زیات سی اوکه ستا میړه دوری هوری ګوری او دنورو ښځو دحُسن احترام کوی نو بیا پوه سه چی ستا به څه حال وی.

# بې عقلي دخدای قهر دی

یوحَد وی د بَدګُمانی، اُوس که زه دغه ووایم چی په ګناوو کی، دالله تعالیٰ په نافرمانی سره چی کوم عیش او عِشرت(خوشحالی) حاصل سی پر داسی عیش او عِشرت باندی دی لعنت وی نو دغه عِشرت صاحب(دحضرت صاحب دخاص خادم نوم عِشرت دی) دلته ناست دی، که دیٔ ولاړسی او ووایی چی صاحبه تا زما بې عزتی وکړه، ته په مضمون خو پوه سه چی پرکوم عِشرت(خوشحالی) باندی زه لعنت وایم کوم چی دالله تعالیٰ دنافرمانی دلاری څخه حاصل سی، بې عقلي په اصل کی دیو ګناه په سزا کی پر عقل باندی دخدای قهر دی، اِلٰهی عذاب دی، ددې بې عقلي هیڅ علاج نسته.

حضرت عیسٰی علیه السلام دیو بې عقل څخه ځغستل، یو اُمتی ورته وویل چی ته دده بې عقلي ورلیری که، ته خو پر پیس لاس تیر کړې نو هغه ښه سی، پر ړوند لاس تیر کړې نو دهغه سترګی سمی سی او ته پر بدن باندی سپین ټیکی والا سړی هم سمولای سې، لاکن دا څنګه خبره ده چی ته دبې عقل څخه ځغلې، ته پر ده هم لاس تیرکه دده بې عقلي به لیری سی نوحضرت عیٰسی علیه السلام ورته وفرمایل چی بې عقلي دالله تعالیٰ عذاب او قَهر دی، دخدای عذاب هغه وخت لیری کیږی چی دیٔ توبه وکاږی.

لهٰذا ما درته وویل چی دنن څخه به ما ته څوك داسی تلیفون نه راکوی، نه به داسی خط څوك راته لیکی، زما د اصلاح دپاره زما پیر کافی دی، ته زما د اصلاح فکر پریږده، که زما ډاکټری ستا په درد نه خوری نو زما مُستَشفٰی، زما هسپتال، زما خانقاه پریږده وبلی خانقاه ته ولاړسه که نې داسی مریض ته شفاء نسی حاصلیدای کوم چی دډاکټرانو اصلاح شروع کړی.

## پر پیر باندی اعتراض کول دمحرومی نښانی ده

مُلاّ علی قاری رحمة اللّٰه علیه فرمائی

﴿مَنِ اعۡتَرَضَ عَلٰی شَیۡخِهٖ وَنَظَرَ اِلَیۡهِ اِحۡتِقَارًالا یُفۡلِحُ اَبَدًا﴾ (المرقاة،ج۱،ص۳۷٤)

چاچی پر دینی پیر باندی اعتراض وکی او هغه ئې کم وبولی نو هغه هیڅکله فلاح (ددین او دنیا کامیابی) نسی حاصلوای. حاجی امداد اللّٰه صاحب فرمائی دچا چی دخپل دینی پیر سره ښونه نیك ګُمان، ښونه ادب، ښونه اکرام وی هغونه ډیره فائده هغه ته رسیږی. دغه لاره دخدای ددوستانو ده، دغه روحانی لار ده، کوم کسان چی دغه عام غوندی بیانکونکی دی چی دښو بیان کولو وروسته ځان بزرګ بولی مګر په یو بزرګ ئې اصلاح نه ده کړې داسی غوندی خلګ دبزرګانو پر هره خبره باندی اعتراض کوی، ددوی په دماغ کی د اوله سره څخه اعتراض شامل کړل سی، اعتراض کول ددوی دین جوړسی، د اصحابو څخه نیولې بیا تر نبیانو پوری هیڅوك هم نه پریږدی، پر ټولو باندی اعتراض کوی چی په ده کی دغه خرابی ده، په هغه کی دغه خرابی ده، زموږ دبزرګانو لاره د ادب لاره ده، ددې قسم د ویونکو او لیکونکو خلګو لاره نه ده.

اے خدا جوئیم توفیقِ ادب
بے ادب محروم ماند از فضلِ رب

اې اللّٰه موږ ستا څخه د ادب توفیق غواړو ځکه چی بې ادبه ستا دفضل څخه محرومه وی.

## دعشقِ مجازی علاج

اُوس دعشقِ مجازی علاج درته بیانوم، ووایاست کوم هلك چی شپږ میاشتی تر مخه بې لمانځه سو، مخ ئې ژړ سو، هډوکی ئې راوتلی وه که ماته نه وای راغلی نوبه

مړسوی نه وای؟ بیا ما هغه ته علاج وروښوی، دعشقِ مجازی مرض په ډیر مشکل سره وځی، سړی وژنی، تر قبره پوری سړی رسوی. لهٰذا ټوله خلګ دی دعشقِ مجازی علاج واوری، حکیمُ الاُمت مُجدِدُّالمِلت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه یو علاج ښوولی دی که پر یوښائستې باندی نظر ومُښتی او دهغې محبت دزړه څخه نه وتی نو دعشقِ مجازی، دغیراللّٰه محبت دزړه څخه دلیری کولو علاج واوری.

۱) پاك کالی واغونده، عطر وواهه، پنځه تسبیحات(۵۰۰واری) د لَا اِله اِلَّا اللّٰه ووایه، کله چی لَا اِلٰهَ وایه نو په زړه کی فکر وکه چی په زړه کی می څونه دغیراللّٰه بُتان(یعنی دهغو محبت) ننوتلی دی ټوله ما دزړه څخه وایستل او کله چی اِلَّا اللّٰه وایه نو خیال وکه چی وزړه ته می داللّٰه تعالیٰ نور راغلی او زما لَا اِلٰهَ عرشِ عظیم ته ورسیده او داللّٰه تعالیٰ سره ئې ملاقات وکی. دمشکوٰة شریف حدیث دی کله چی بنده پرمځکه باندی لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه وایی نو دغه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه تر اوو آسمانو پورته سی او داللّٰه تعالیٰ سره ملاقات وکی. دمشکوٰة شریف روایت دی

﴿لاَ اِلٰهَ اِلَّااللّٰهُ لَیْسَ لَهَا حِجَابٌ دُوْنَ اللّٰهِ﴾

(المشکوٰة، کتاب الدعوات،ج۲ ص۷۱٦،المکتب الاسلامی)

نو چاته چی دلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ویلو توفیق وسو نو هغه دی پوه سی چی په دې بهانه ئې دخپل رب سره ملاقات کیږی، موږ که رب ته نسو رسیدای زموږ کلمه خو داللّٰه تعالیٰ سره ملاقات کوای سی، ددې قدر دعاشقانو څخه وپوښتی.

بس ہے اپنا ایک نالہ بھی اگر پہنچے وہاں
گرچہ کرتے ہیں بہت سے نالہ و فریاد ہم

ترجمہ: دخدای تعالیٰ ودربار ته چی زما یو فریاد هم ورسیږی (یعنی قبول سی نو زما دپاره کافی دی) که څه هم زه ډیره ژړا او فریادونه کوم.

انشاء اللّٰه دلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه دکلمې په برکت سره به په یو څو شپو کی دزړه دنیا بدله سی

که (سرې د ګناوو په خاطر) ليونی سوی هم وی نو ويليم فائب او ټن(دخوب ګولی) به ټوله ځنی پاته سی او دالله تعالیٰ په نامه سره به خوب هم ورځی.

۲) فکر وکه چی زه مړ سوی يم او په کومو اعضاوو چی ګناوی کيدلې په قبر کی هغه اعضاوی چِنجيان خوری او دهغه هلك او ښځی فکر وکه چی په قبر کی دهغو پر اعضاوو باندی په زرهاوو چنجيان مُوښتی دی، وګوری زه عُمری دهلك او انجلی ددواړو دحسن انجام بيانوم، څه معلوم څوك داسی بې عقله ښځه ده چی دا ورته محسوسه سوه چی دحسنِ مجازی انجام په بيانولو سره دښځو بې عزتی کيږی (په دغه خاطر) دهغو دبارخوګانو بې عزتی مه کوه. نو دهغه مَعشُوق(هلك) يا مَعشُوقې(انجلی) په باره کی دغه فکر وکه او په خپل باره کی هم دغه فکر وکه چی يوه ورځ به زموږ په قَبر کی څه حال وی، سترګی به چِنجيان ځغله وی، بارخوګان به چِنجيان خوری يو يو وريښته به چِنجئی وړی، معشوق يا دمعشوقې دټوله بدن اعضاوی به تاش په تاش سی، دا زه دبې پرده ښځو په باره کی وايم چی ددوی په قصه کی مه کيږی، انشاء الله تعالیٰ پدې مراقبې(فکر) سره به ځان دحرام ځای څخه دساتلو دپاره په زړه کی قوت پيداسی، زه دحلال ځای څخه نه منع کوم، بې شکه دحلالی مائينې په ښه محبت سره حق ورادا که، بس دحرام څخه ځان وساته، زما شعر دی

جب نہیں دی مجھے حلال کی مے
کیوں پیوں چھپ کے میں حرام کی مے

ترجمہ: چی خدای تعالیٰ ماته حلال دچښولو دپاره نه دی راکړی نو زه په پټه ولی دحرام دا وچښم.

دچاچی ودونه نه دی سوی يا دهغو ښځی ناجوړه دی يا سپنسری دی نو هغوی دی د دُوری هوری په کتلو سره نظر نه خرابوی، نو اول نمبر علاج څه دی پنځه تسبيح دلَا اِلٰهَ اِلَّا الله ووايه، په مابين مابين کی محمد رسول الله صلی الله تعالیٰ عليه وسلم

په ویلو سره کلمه پوره که. انشاء اللّٰه ددې په برکت سره به زړه دغیراللّٰه څخه پاك سی او داللّٰه تعالیٰ دمحبت څخه به ډك سی. دوهم نمبر په خپله باره کی هم فکر وکه چی یوه ورځ قَبرته ځم او هغه معشوق(هلك) یا معشوقه(انجلی) هم قبرته ځی، ددواړو بدنونه خراب سول، خاوری سول، اُوس قبر خلاص که د دواړو دخاورو څخه پوښتنه وکړه، دعاشق صاحب دخاورو څخه هم او دمعشوق صاحب دخاورو څخه هم چی اې خاورو ستاسی هغه ټوله محبتونه څه سول، ستاسی هغه دګناوو اعضاوی څه سوې، تاسی ددنیا څخه لعنت یوړی

*نیکواں رفتند و سنت ها بماند*
*و از لئیما ظلم و لعنت ها بماند*

نیك خلګ ددنیا څخه ولاړه او دهغو دسنتو او طریقو ذکر پاته دی او بد خلګ او نالائقی ښځی ولاړې او دهغو دګناوو او بدکاری ذکر پاته دی او پر هغو باندی لعنت اُوری. وګوری دفلمو دخلګو څه حال دی، دغه لڅی ښځی چی ګرځی څونه خلګو ته دبدنظری دعوت ورکوی دغه ټوله لَعنتونه به پر دوی باندی هم اُوری، څونه خلګ چی ودوی ته په بد نظر وګوری نو دغه ګناه به ددوی پر سر هم لویږی کوم چی بې پرده ګرځی.

دعشقِ مجازی څخه دنجات دپاره دریم نمبر علاج دغه دی چی دغه فکر وکه چی دقیامت ورځ ده او اللّٰه تعالیٰ پوښتنه راڅخه کوی چی تا خپله ځوانی چیری ضایع کړل؟ سترګی دی چیری استعمال کړې؟ تاته دغه سترګی ستا مور و پلار درکړی وې اوکه دمور په نس کی ما ستا سترګی درجوړی کړی وې اود دید روښنائی می پکښی ایښې وه.ستا دغه شونډان به هم دقیامت په ورځ خبری وکی، داللّٰه تعالیٰ ارشاد دی

**﴿اَلۡیَوۡمَ نَخۡتِمُ عَلٰۤی اَفۡوَاهِهِمۡ وَتُکَلِّمُنَاۤ اَیۡدِیۡهِمۡ وَتَشۡهَدُ اَرۡجُلُهُمۡ بِمَا کَانُوۡا یَکۡسِبُوۡنَ﴾**

(سورة یٰس، آیة٦٥)

دقیامت په ورځ به اللّٰه تعالیٰ پر ژبه باندی مُهر(بَندیز) ولګوی او لاس و پښې به خبری کوی او څه به وائی؟ واوری مولانا رومی رحمة اللّٰه علیه ددې نقشه بیان کړې ده، فرمائی

دست گوید من چنیں دُزدیده ام
لب بگوید من چنیں بوسیده ام

لاس به وائی چی اې اللّٰه موږ دخلګو جیبونه پریکوله، غلا موکوله، شونډان به وائی چی موږ دنامحرمه ښځو او دښائسته هلکوانو مُچی اخستې. اُوس ولاړسه د تُرکیه په ښار قُونیه کی دمولانا رومی وقبر ته او ومولانا رومی ته ووایه چی تا هم دحُسن بې عزتی وکړه

لب بگوید من چنیں بوسیده ام

شنډان به وائی چی اې خدایه دغه بَدبخت په دغه شنډانو دنامحرمه ښځو او ښائسته هلکوانو مُچی اخستې، هغه وخت دقیامت په ورځ به معلومه سی چی ستا دشنډانو څونه احترام کیږی، کله چی ستا څخه پوښتنه وسی چی ته نه وې خبر چی

جو کرتا ہے تو چھپ کے اہلِ جہاں سے
کوئی دیکھتا ہے تجھے آسماں سے

ترجمہ: څه چی ته کوې په پټه له جهانه څوك درته ګوری له آسمانه.

## دبدفعلی څخه دحفاظت یوازنی لاره دښائستو څخه لیریوالی دی

نو درې نُخسې وسوې او څلورمه نُخسه دغه ده چی دحُسن دخاوندانو څخه لیری اوسه که هلك وی که انجلی ځکه چی سعدی شیرازی صاحب فرمائی که خَتې ډیری وی نو پِیل هم ښوه ایږی. اللّٰه تعالیٰ ﴿لَا تَفْعَلُوْا الزِّنَا﴾ زنا مه کوی نه دی فرمایلی بلکه څه ئې فرمایلی دی؟ ﴿لَا تَقْرَبُوْا الزِّنَا﴾ زنا ته ورنژدې کیږی لامه، ځکه چی د انسان فطرت دی که دحُسن وخاوندانو ته نژدې اوسیدی نو به یوه ورځ په

بدفعلی کی هم مُبتلا سی. اُوس که څوك یوې انجلی ته په دفتر کی دځانه سره کار ورکی نو به دهغې دعشق څخه محفوظه سی؟

یاد وساتی دحسن څخه ځان لیری وساتی هلك وی که انجلی دهغه ځای څخه لیری ولاړسه کنې ورسره اخته به سې، په وارو وارو درته وایم چی کوم خلګ دښځو او هلکوانو سره نژدې اوسیدل آخر په ګناه کی ونیول سول او دړیرو عزت ئې هم ختم سو. په دې خاطر پر خپل طاقت باندی ناز مه کوی چی موږ په ګناه کی نسو اخته کیدای، چی اللّٰه تعالیٰ موږ کمزوره بللی یو

﴿تِلْکَ حُدُوْدُاللّٰهِ فَلاَ تَقْرَبُوْهَا﴾

(سورة بقرة آیة۱۸۷)

داللّٰه تعالیٰ مقرره سوی حَـد ته نژدې مه اوسیږه ځکه چی ته کمزوره یې. لهٰذا څوك چی پهلوانی ښکاره کوی شیطان دهغه مخ ورتورکړی، کیدای سی چی په یوه ورځ کی ئې نه کی ورسره اخته، په شپږ میاشتی کیداسی، په قراره قراره دهغه دمحبت زهر په بدن ننوزی اوبیا به دداغه انجلی یا هلك سره په بدفعلی کی ونیول سی، په دې خاطر دحسن دخاوندانو څخه لیری اوسه، دښځو څخه لیری اوسه، دلغړزنو هلکوانو څخه لیری اوسه بلکه دهغو کوچنی کوچنی ږیری درلودنکی هلکوانو څخه هم لیری اوسه چی په کتلو سره شوق ورته کیږی.

## د اولیاوو دصُحبت نعمت

او زما دوستانو پنځمه نُخسه ډیره خوندوره ده، په دې کی هیڅ کار نسته او ډیر لُطف هم لری، هغه څه ده؟ دخدای دکوم دوست سره چی ته محبت لرې، زړه دی ورسره لګیږی، دهغه په صحبت کی ناسته ولاړه لرې دهغه سره اصلاحی تعلق جوړکه(یعنی په هغه باندی خپله اصلاح شروع که) تاسی ووایاست دچاچی دیو دینی پـیر سره محبت وی نوهغه پـیرته کتل خوند کوی که یا؟ دونه خوند کوی چی

مفتی محمد حَسَن اَمـرتسَری رحمة اللّٰه علیه دجامعه اشرفیه لاهور مدرسې بنیاد ایښونکی، ډیر لوی حافظ، عالم او مفتی وخپل پـیرحضرت تهانوی رحمة اللّٰه علیه ته فرمائی چی اې زما شیخه! که زه تاته یو نظر وګورم او ددې وروسته زرکاله په سجده کی دشُکر دپاره سر کښیږدم بیاهم دالله تعالیٰ ددغه نعمت(ستا ددید) حق نسم اداکولای، نو دغه پنځم نمبر چی دی یعنی داولیاوو صُحبت دغه ددین روح ده، دین دداغه څخه مخته تللی دی، اکبر اِلـه آبادی وائی

*نہ کتابوں سے نہ وعظوں سے نہ زر سے پیدا*
*دین ہوتا ہے بزرگوں کی نظر سے پیدا*

*ترجمہ:* دین(یعنی دعمل کولو طاقت) نه په کتابو سره پیداکیږی، نه په بـیانو سره پیداکیږی، بلکه دین دبزرګانو په نظر سره پیدا کیږی(یعنی دهغو په صحبت کی انسان ته پر دین عمل کول آسانه سی).

واوری اسلام پر مخ تګ دنبوت دنظر څخه کړی دی(یعنی دایمان په حال کی که پرچا باندی درسول اللّٰهﷺ نظر ومُبنتی یا دهغه نظر پر علیه السلام باندی ومُبنتی نو هغه صحابی سو)، درسول اللّٰهﷺ دنظر څخه دین پر مخ تګ کړی دی، دهغه وروسته د اصحابو دنظر څخه دین پر مخ تګ کړی دی، دهغو وروسته دتَـابَـعینو دنظر څخه دین پر مخ تګ کړی دی، دهغو وروسته تر ننه پوری د اولیاوو دنظر څخه دین پر مخ تګ کوی او تر قیامته پوری به دغه سلسله شروع وی، بس مضمون ختم سو.

## پاکستان اسلامی سلطنت دی

د اګست دمیاشتی پر څوارلسم تاریخ دلته یو پروګرام جوړسوی وو ځکه چی نن سبا خلګ نظام نه پیژنی پروګرام پیژنی په دې خاطر په مجبوری کی انګریزی وایم. لهٰذا تاسی ټولو ته صلاح درکوم چی زما د څوارلسم(۱۴) اګست پـیته حاصل کی، په

هغه کی ما په دلیل سره جواب ورکړی دی چی پاکستان اسلامی سلطنت دی. حکیمُ الامت مجددُالمِلت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمائی کوم چی دمفتی اَعظم پاکستان مفتی محمد شفیع صاحب غوندی عُلماوو پیردی چی اسلامی سلطنت هغه ته وائی چی دهغه ځای مشر یعنی دمَلك بادشاه مسلمان وی او اسلامی قانون دعَملی کولو قدرت ولری، بیا هغه دخپل بشری او ایمانی کمزوری څخه دیو لوی مملکت څخه وبیریږی یا دخپل ملك دحالاتو څخه وبیریږی او اسلامی احکام نه کړی نافذ نو هغه اسلامی سلطنت دی ځکه چی هغه خپل قدرت استعمال نه کړی نو هغه مسلمان بادشاه دقدرت دنه استعمالولو خو به مجرم وی لاکن هغه اسلامی مملکت دی چیری چی بادشاه د اسلامی قانون دعملی کولو قدرت ولری.

ددې څخه معلوم سول چی هغه ټول مملکتونه دکوم چی بادشاهان مسلمانان دی هغه ټوله اسلامی مملکتونه دی. لهٰذا پاکستان اسلامی مملکت دی او زموږ دغه وزیران قدرت لری که یا؟ ددغه پاکستان د یو اینچ مځکی دپاره ځان قربانول شهادت دی. پاکستان دبزرګانو او داولیاوو په ژړا او په دُعاوو جوړسوی دی، هغه عُلماءِ او اولیاءِ دخدای زما ومخته دی چاچی ددغه ملك دجوړیدو دپاره کوښښونه کړیدی، په هغوکی زما پیر او شیخ شاه عبدالغنی صاحب رحمة اللّٰه علیه هم دی. لهٰذا اللّٰه تعالیٰ دی ددغه سلطنت حفاظت وکی او موږ دی دهندوانو دغلامی څخه وساتی. بعضی بې عقلان وائی تردې خو ښه دی چی دغه وطن هندوان واخلی **لاَحَوۡلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ** دغه خونه لو بده جمله ده، خدای دی دتوبې توفیق ورکړی او خدای دې وبخښی کنې دغه ډیره خطرناکه جمله ده.

## د صله رحمی حق داره څوك دی؟

یوه خبره بله درته کوم چی د صله رحمی هم ډیر خیال وساتی، نن سبا په دې معامله کی خلګ ډیره لاپروایی کوی

﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَاءَ لُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ﴾

(سورة نسآء، آیة١)

اَرْحَام د رحم څخه دی، عام خلک دخپل مور او پلار سره ښه کول صله رحمی بولی لاکن علامه آلوسی السید محمود بغدادی په تفسیر روحُ المَعَانی کی فرمائی چی دواده وروسته دمائینې مور او پلار هم دصله رحمی یعنی دوینو دخپلوانو برابر سی یعنی څرنګه چی دخپل مور او پلار ادب او احترام لازم دی او څرنګه چی خپل مور وپلار او انا و نیکه حق لری هم دغه رنګه دمائینې څخه چی کومه خپلوی جوړیږی دهغو حق هم هغسی دی یعنی هغه هم په صله رحمی کی داخل دی، اوس دتفسیر روحُ المَعَانی عربی عبارت درته وړاندی کوم

﴿اَلْمُرَادُ بِالْاَرْحَامِ الْاَقْرِبَاءُ مِنْ جِهَةِ النَّسَبِ وَمِنْ جِهَةِ النِّسَآءِ﴾

یعنی هغه خپلوان چی دخاندان دنسب څخه دی او کومه خپلوی چی دمائینې څخه جوړیږی هغه (دواړه) په صله رحمی کی شامل دی.(روح المعانی ج ٤ص١٨٥)

## ژبه په قبضه کی وساتی

دوهمه خبره دغه ده چی خپلی خبری سمی کړی

﴿وَقُوْلُوْا قَوْلاً سَدِيْدًا﴾(سورة الاحزاب،آیة٧٠)

یعنی د قَـهر یوه خبره تر خولې مه راباسی کنې بیا به ډیره پښیمانی کوی او دهغې خبری علاج هم بیا نه کیږی. لهٰذا کومه خبره چی کوې نو داسی ئې وکه چی په هغه سره زړونه نژدې سی، داسی خبره مه کوه چی په هغه زړونه مات سی.

## نکاح کوم وخت سنت ده

او آخری خبره دغه ده چی نکاح کول درسول اللّٰهﷺ سنت دی، علیه السلام وفرمایل څوك چی نکاح ونه کړی ﴿فَلَيْسَ مِنِّیْ﴾ دهغه سره زما هیڅ تعلق نسته، ددې

ځخه معنٰی هغه خلک دی چی قدرت لری بیاهم نکاح و نه کړی او که څوك معذوره دی، مجبوره دی، مائینې ته ډوډی او کالی نسی ورکولای، کور نسی ورکولای یا هغه ته څوك انجلی نه ورکوی یا ډیر سپنږیری سوی دی چی هر چیری ورسی نوهلته سپنسرې ورکوی او دی دغه وائی چی زما دداسی ښځی سره زړه نه لګیږی نوپه داسی حال کی نکاح کول سنت نه پاته کیږی.

ډیر اولیاء داسی هم تیرسوی دی چاچی ودونه نه دی کړی لکه حضرت بِشر حافی، دمسلم شریف شرح لیکونکی شیخ مُحی الدین ابو ذکریا نَـووی او علامه تَـفتازانی رحمة اللّٰه علیهم وغیره. لهٰذا څوك حقیر هم مه بوله یعنی چاچی واده نه وی کړی نو دغه مه وایه چی دیٔ دسنت پریښونکی دی، ډیر اولیاء هم داسی معذوره سوی دی چاچی دمجبوری ځخه واده نه دی کړی، نو دغه ئې وبوله چی دیٔ به هم یو څه مجبوری لری. ښه اوس نو دعا کوم چی څه وویل سوه او څه واوریدل سول اللّٰه تعالٰی دې قبول کړی او دعمل کولو توفیق دی اللّٰه تعالٰی راپه نصیب کړی، آمین

**وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ**

# دربیانِ مَذمّت حُبِّ دُنیا

(مأخوذ از مثنوی اختر)

رُخ نیار دھر کہ او مجنونِ دوست
گرچہ صدھا ملکِ گونا گونِ اوست

ملک را بگذار و مالک را بگیر
تا کہ صدھا ملک یابی اے فقیر

من نگویم زیں سخن راھب شوی
بلکہ گویم سُوئے حق راغب شوی

ملک گرداری تو بھرِ دوست دار
جذبۂ انفاق بھرِ دوست دار

در لحد آں دم کہ مرقد ساختی
اَز جھانِ خویش پس چہ یافتی

قول ایں از مولوی رومی بگیر
ھمچو کشتی آب را اندر مگیر

گرچہ کشتی اندرونِ آب ھا
لیک باشد بر برونِ آب ھا

ھمچنیں می رَد دریں دُنیائے دوں
جسم را نھہ اندروں دِل را بروں